# شپږ ګناه کاري بنځي

ژباړن

مولوي عبدالهادي حماد




ناشر احمدشاهي کتب خانه
کابل بازار کندهار

# شپږ ګناه کاري ښځې

ژباړن : مولوي عبدالهادي حماد

ناشر : احمدشاهي کتب خانه کابل بازار کندهار



# دکتاب ځانګړتیاوي




| | |
|---|---|
| اب نوم | شپږ ګناه کاري ښځې |
| ف نوم | مولانا عبدالرؤف سکر |
| ن | مولوي عبدالهادي حم |
| کال | ۱۳۸۹ هـ ش |
| یوتري چاري | ژباړن |
| پ شمېر | زرټوکه |
| | احمدشاهي کتب خان<br>کابل بازار کندهار |

۰۷۰۰۳۲۱۴۷۹

# فهرست

# فهرست

# فهرست

## مقدمة

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله نحمده ، ونستعينه ، ونستغفره ، ونتوب إليه ، ونعوذ بالله من شرور أنفسنا ، ومن سيئات أعمالنا ، من يهده الله فلا مضل له ، ومن يضلل فلا هادي له ، وأشهد أن لا إله إلا الله وأشهد أن محمدا عبده ورسوله ، وصلى الله عليه وآله وسلم تسليما كثيرا.

امابعد فاعوذبالله من الشيطان الرجيم ، بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّ ٱلْمُسْلِمِينَ وَٱلْمُسْلِمَٰتِ وَٱلْمُؤْمِنِينَ وَٱلْمُؤْمِنَٰتِ وَٱلْقَٰنِتِينَ وَٱلْقَٰنِتَٰتِ وَٱلصَّٰدِقِينَ وَٱلصَّٰدِقَٰتِ وَٱلصَّٰبِرِينَ وَٱلصَّٰبِرَٰتِ وَٱلْخَٰشِعِينَ وَٱلْخَٰشِعَٰتِ وَٱلْمُتَصَدِّقِينَ وَٱلْمُتَصَدِّقَٰتِ وَٱلصَّٰٓئِمِينَ وَٱلصَّٰٓئِمَٰتِ وَٱلْحَٰفِظِينَ فُرُوجَهُمْ وَٱلْحَٰفِظَٰتِ وَٱلذَّٰكِرِينَ ٱللَّهَ كَثِيرًا وَٱلذَّٰكِرَٰتِ أَعَدَّ ٱللَّهُ لَهُم مَّغْفِرَةً وَأَجْرًا عَظِيمًا ﴿٣٥﴾ (١)

ژباړه : باور وكړئ مسلمانان نارينه ،مسلماناني ښځي ، مؤمنان نارينه ،مؤمناني ښځي، امر منونكي نارينه ، امر منونكي ښځي ،ربنتيني نارينه ، ربنتيني ښځي ، صبر كونكي نارينه ، صبر

---

[1] : احزاب ، اية ٣٥

کونکي ښځي، عاجزي کونکي نارینه ،عاجزي کونکي ښځي
خیرات کونکي نارینه ، خیرات کونکي ښځي، روژه نیونکي نارینه
روژه نیونکي ښځي ، پاک لمني نارینه ، پاک لمني ښځي
دالله جل جلاله ډېر ذکر کونکي نارینه او دالله جل جلاله ډېر ذکر کونکي ښځي
الله جل جلاله ددوی لپاره مغفرت او لویه مزدوري برابر کړي دي. (یعني
دپورتنیو صفات لرونکو نارینو اوښځو ته به الله جل جلاله مغفرت ورکړي
او لویه مزدوري به ورکړي)

## شپږ ګناه کاري ښځي

### دخوندو لپاره عبرت

درنو دوستانو ! په تني مجلس کي ښاغلي ورونه ګډون لري او اغلي
خوندي هم ګډون لري.

که څه هم دخوندو لپاره په نورو مجلسو کي هم مناسب ځایونه ستا
چي ددوی لپاره خاص پکښي وسي خو نن چي کوم څه بیانیږي
هغه دخوندو او ورڼو دواړو لپاره دي ، که څه هم په ځینو ځایونو
کي به یوازي دخوندو لپاره خاص وي ، په هر صورت زموږ
مطلوب په نني مجلس کي دیوه حدیث بیانول دي چي دښځو په اړه
راغلی دئ او هغه مفاهیم ، ګټي او فوائد چي ددغه حدیث څخه
راوزي دهغو بیان دئ. پاته دي نه وي چي کومه اخلاقي ، فکري او
مذهبي تربیه چي دهمدغه حدیث څخه ښکاریږي دنارینوو او ښځو
دواړو لپاره دي ځکه الله جل جلاله ته نارینه او ښځي دواړه مسؤل دي.

## درسول الله ﷺ ژړا

لاندي حديث چي بيانيږي حافظ شمس الدين الذهبي رحمه الله په خپل كتاب «الكبائر» كي رانقل كړى دئ او خورا مهمي ګټي پكښي غښتي دي چي خلاصه يې په لاندي ډول ده:

حضرت علي رضي الله عنه او حضرت فاطمة رضي الله عنها يوځاى درسول الله ﷺ پاک حضور ته تشريف يوړى . حضرت علي رضي الله عنه فرمايي: كله چي زه درسول الله ﷺ حضورته حاضر سوم ما رسول الله ﷺ وليدئ چي په ژړا او غم باندي اخته و ما پوښتنه ځني وكړه چي يارسول الله ﷺ! زما مور او پلار دي تر تا قربان وي څه شي دومره غمګينه كړى يې؟ رسول الله ﷺ په جواب كي وفرمايل: ما دمعراج په شپه خپل امت ښځي وليدې چي په ډول ، ډول عذابونه اخته وي ، كله چي ما دهغه تصور وكړ ، دومره وېرونكي او هولناک عذابونه وه چي په محض تصور يې په ژړا اخته كړم.

## پر امت باندي درسول الله ﷺ مهرباني او شفقت

رسول الله ﷺ پر خپل امت باندي دومره مهربانه او شفقت كونكى و چي دهغه بيان زموږ لپاره بيخي ممكن نه دئ لكه مور چي پر خپل زوى باندي سرقربانوي . دمثال په ډول كه چيري مور خپل زوى په محبس «بندي خانه» په داسي حال كي ووينې چي په لاسونو كي يې زولنې وي ، مور به ددغه زوى په ليدلو سره څومره

غمگینه سي؟ او څنګه به ددغه زوی په لیدلو سره په زړه کي سره خوړل کیږي؟ او دغه مور به پر خپل زوی باندي بې اختیاره اوښکي تویوي او ژاړي به ، رسول الله ﷺ چي تر ټولو پلرونو او میندو زیات مهربانه دئ کله چي یې دخپل امت ښځي په عذاب کي ولیدې بې اختیاره په ژړا سو.

اللهم احفظنا من كل بلاء الدنيا وعذاب الاخرة

## دعذاب ورکولو دکیفیت څنګه والی

### دښځو څخه شیږ ګناه کاره ډلي

رسول الله ﷺ دخپل امت وښځو ته دعذاب ورکولو ډول په لاندي ډول بیان کړ:

۱ : په لومړۍ مرحله کي ما یوه ښځه ولیده چي په وېښتیانو په دوزخ کي ځړېدل او دسر ماغزه یې ددیګ په څېر ایشېدل.

فایده : لومړی خو په دوزخ کي داخلېدل څه اسانه خبره نه ده بلکي ودوزخ ته ورتلل دسختي ویري ، وحشت او وهلت ځای دئ ، الله ﷻ دي په خپل فضل سره موږ او تاسو ټوله ددوزخ دورتګ څخه وژغوري. (امین)

دوهم دسر په وېښتیانو ځړېدل سخته شکنجه او لوی عذاب دئ، دریم داچي دسر دمغزو ایشېدل په څو چنده زیات سخت عذاب دئ.

۲ : رسول الله ﷺ وفر مایل : دوهمه ښځه مي په داسي حال کي

ولیدل چي په ژبه باندي په دوزخ کي ځړېدل.
تاسو فکر وکړئ چي ژبه څومره نازک شی ده دا لوی بدن چي په ځړیږي . دبدن ټوله دروندوالی چي په دې نازکه ژبه ځړانده وي دابیخي پر ژبه باندي سخت دروند تماميږي ځکه چي څوک په لاسو باندي ځړیږي دده لپاره تر مرګ سخت کار دئ نو څوک چي په نازکه ژبه ځړیږي دا خو بیخي تر مرګ په څو واره سخت دئ
۳. رسول الله ﷺ وفرمایل دریمه ښځه مي په داسي حال کي ولیده چي په خپلو تیو باندي ځړېدل. دا زما دامت ښځي وي چي پر ځانو باندي یې دمسلمانانو نومونه ایښي وه مګر دمسلمانۍ بوی پکښي نسته چي ددې ډول عذابونو وړ ګرځېدلي دي.
۴. څلورمه ښځه مي په داسي حالت کي ولیده چي پښې یې پر سینه باندي تړلي وې او لاسونه یې پر مخ باندي تړلي وه.
۵. پنځمه ښځه مي په داسي حال کي ولیده چي سر یې دخنزیر و او پاته بدن یې دخره و . په حقیقت انسان و. شاوخوا ماران او لړمان پر راګرځېدلي وه.
۶. شپږمه ښځه مي په داسي حال کي ولیده چي بدن یې دسپي و . ملایکو داور په چلاخو باندي وهل . دبدن څخه یې داور لمبې پورته کېدلې.
حضرت فاطمې ﵂ درسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې ګرانه پلاره: څه لامل و چي دغه ښځي په دغه سختو عذابونو باندي اخته وې؟ رسول الله ﷺ په جواب کي وفرمایل: هغه ښځه چي دسر په وېښتیانوباندي په دوزخ کي ځړېدل هغه ښځه ده چي دکور څخه

دباندي وزي او دخپل سر وېښتان دنامحرمه نارينوو څخه نه پوټوي
بلي: كه موږ لږ په خپله ټولنه كي وګورو ښځي دخپل سر وېښتيان بيخي نه پوټوي بلكي دا كار بيخي يوعام رواج ګرځېدلى دئ ، چي ښځي نازك پوړني پر سر كوي . لوڅ سر راوزي او داسي نور

# حجاب

داسلام قانون داسي دئ چي ښځي به داسي مناسب حجاب كوي چي دسر وېښتيان يې پټ وي څكه دبدن ټول غړي دلمانځه پر مهال باندي پوټول فرض دي
كه ديوې ښځي دسر دوېښتيانو څلورمه برخه په لمانځه كي ښكاره سي او دومره وخت ښكاره پاته سي چي درې واره سبحان الله پكښي ويل كيږي لمونځ يې نه صحيح كيږي
همدا ډول كه ديوې ښځي نازك پوړنى پر سر وي چي دسروېښتان يې تر معلوميږي لمونځ يې نه صحيح كيږي. څكه ښځي ته اړينه ده چي په هر مهال پوره اسلامي حجاب وكړي
ځيني ښځي نازك پوړنى غبرګ كړي او دايې باور وي چي اوس نو لمونځ صحيح كيږي حال دا چي كه په دغه حال كي ددې دسر وېښتان معلومېدل بيا يې هم لمونځ نه صحيح كيږي
كله داسي وي چي پوړنى دومره لنډ وي چي دسر وېښتان پوره نه په پوټيږي بلكي يوه برخه يې معلوميږي او يا يې لستوڼي لنډ وي دلاسو تر خپړكو ور تېر دڅنګلو اندازه يا يوه برخه يې معلوميږي

.په پوړني باندي نه پوټيږي په دې ټولو صورتونو کي يې لمونځ نه صحيح کيږي.

شرعي مسئله داسي ده چي په لمانځه کي که لاندي ځايونه ښکاره سي لمانځه ته تاوان نه رسوي:

الف : ګردی مخ يعني دتندي دوښتانو دشنه کېدو څخه بيا لاندي ترزني او ديوه غوږ څخه تر بل غوږ پوري

ب : لاسونه تر بندو پوري يعني يوازي دلاسو ورغوي او دورغو دشاخوا.

ج : پښې تر بجلکو پوري

که دسر دوېښتانو . يا پنډۍ دريمه برخه دومره وخت ښکاره سوه چي درې واره سبحان الله ويل کيږي لمونځ يې نه صحيح کيږي،

همدا لامل دئ چي زموږ پاک دين پرېکړه کوي او داهل سنت والجماعت عقيده هم داده چي ښځي بايد خپل ټول بدن دنامحرمه نارينوو څخه پټ وساتي.

## دشرعي او دودېز حجاب ترمنځ توپير

شرعي حجاب دادئ چي ښځي بايد دسر څخه تر پښو پوري خپل ټول بدن دنامحرمه نارينوو څخه پټ وساتي . داسي نه ده لکه زموږ په ټولنه کي چي حجاب دود دئ څکه زموږ په ټولنه کي چي ښځي حجاب کوي هغه داسي دئ چي کله دباندي وزي نوداسي حجاب کوي چي دټولو نامحرمه نارينوو سترګي ورته را اوړي ، پښې يې لوڅي وي . تنګي جامې يې اغوستي وي . بنګړي په لاسو

وي او پایزېبونه يې په پښو وي ، شرنگی يې دنامحرمه نارينوو تر غوږو پوري رسيږي . تش په نامه يې داسي چادري کړې وي چي هغه دنامحرمه نارينوو سترگي زياتي جلبوي. کله چي دکور څخه وزي دحجاب يې دا حال وي کله چي کور ته راسي په کور کي داسي جامې اغوندي چي گرېوان يې څيري وي سينه يې معلوميږي ، لستوڼي يې دومره لنډ وي چي مړوندونه يې معلوميږي . کالي يې دومره تنگ او لنډ وي چي دبدن ډېر غړي يې معلوميږي په داسي جامو کي په کور کي اوسېدل هم جايز نه دي ځکه په داسي جامه کي ودغه ښځي ته دپلار ، ورور ، خسر ، اکا ،ماما او ټولو محرماتو کتل جايز نه دي پر دي خلک خو لا څه کوي؟ بله بدبختي داده چي زموږ په ټولنه کي سره ددې چي ښځي دغسي بې حيا او بې پټه جامې اغوندي ـ په قريبانو کي دداسي کسانو څخه سترنه کوي چي دهغوی څخه ستر کول لازم وي لکه دعمه زوی ، دخاله زوی ، دماما زوی ، اخښی او داسي نور.(۱)

دداسي کسانو څخه ستر کول لازم دي . بلکي ددغه کسانو څخه چي څومره تاوان پيښيږي دپرديو څخه نه پيښيږي ، پکار داده

---

۱: داسي لاهم ويل کيږي چي دورور سره سفر کول نه دي روا او داخښي سره سفر کول روا دي حال داچي دايوه داسي خبره ده چي وينا يې هم گناه ده ځکه داخښي څخه ستر کول بيخي لازم دئ. اخښي هيڅ دمحرماتو څخه نه دئ . محرم کس هغه چا ته ويل کيږي چي دټول عمر لپاره نکاح کول ورسره ناروا وي . اخښی خو داسي څوک دئ چي دخور تر مرگ وروسته ددې نکاح ورسره روا ده. ژباړن.

چي مسلماني ښځي په هغه ډول خپل ستر وکړي کوم چي اسلام ښودلی دئ نه په هغه ډول چي رواج دئ.

## داسلامي ستر رعايت کول
## دنامحرمه نارينوو څخه ځان ساتل

دښځو لپاره هر وخت ستر کول لازم دي . البته په ځينو کورونو کي دښځو سره نامحرمه نارينه وي چي ښځي نه سي کولای دهغو څخه په هغه ډول ستر وکړي څنګه چي لازمه وي دمثال په ډول دښځي دمېړه ورور چي دښځي سره په کور کي اوسيږي ځکه ددې مېړه دخپل ورور سره په کور کي ګډ ژوند کوي او دکور زيات کارونه هم دښځي دلېوره (دمېړه دورور) په غاړه وي په داسي حالت کي هم ښځي ته نه ده ښکار چي بې ستري وکړي بلکي په دغه حالت کي به هم ښځه ستر کوي . په داسي ډول چي ښځه به دخپل سر وېښتيان ټوله ټينګ وتړي څو پر مخ او شا يې را ايله نه سي ، پر مخ به يو نقاب ځړانده کړي ، يا به پوړنی داسي پر مخ را ايله کړي چي مخ يې پټ وي يوازي دليدلولپاره يوه يا دوې سترګي ښکاره کړي نور يې ټوله بدن پټ وي.
که چيري دټوله بدن پټېدل ممکن نه وي نو که لاسونه او پښې يې تر جايز ځای پوري ښکاره سي او بيا دخپل کور کارونو پرمخ بوزي پروا نه کوي خو غوره خبره داده چي پر مخ باندي يونقاب وځړوي

، که اړتیا پیښبه سي نو تر نقاب لاندي دي خبري کوي (۱)
کومه ښځه چي بادیانته وي ،دحیااو عفت سره مینه لري هغې ت
هیڅ ګرانه خبره نه ده چي پوره دحجاب کولو خیال وساتي ، پ
ځانګړي ډول هغه ښځي بیخي دګرانۍ احساس نه کوي چي داخرت
د الهي عذابونو وېره یې په زړه کي وي ،کومه ښځه چي دحجاب ا
ستر پروا نه کوي . په داسي جامو کي ژوند کوي چي دسپېڅل
شریعت داصولو څخه خلاف وي داسي کړنه دښځي بې عزتي ده
دغه ښځه بې حیا او بې عفته ښځه ده.

په تاسف سره باید ووایو چي زموږ په ټولنه کي زیات شمېر داس
ښځي سته چي کله دنامحرمه نارینوو په وړاندي ځي پښې لڅوا
یې بیخي عادت ګرځېدلي وي ، بیخي ددې فکر لاهم نه وي ورسر
چي پښې پوټول لازمي او اړین کار دئ. حال داچي داسي کړن
دښځي لپاره عزت نه بلکي دښځي لپاره بې عزتي او بې حیایي ده
بالاخره داسي ښځه خامخا په بدو اوصافو سره مشهور کیږي ا
خلګ به په سپکه سترګه ورته ګوري.

دپورته خبرو په نظر کي نیولو سره په کور او بیابان دواړو کي ښځ
ته په هیڅ صورت کي جایز نه ده چي دنامحرمه نارینوو په وړاندې
دبدن یو غړی ښکاره کړي. کومه ښځه چي په خپل کور کې
دحجاب رعایت نه کوي ، تنګ او لنډ کالي کوي ، په کور کې

[1]: دلازیاتومعلوماتو لپاره داشرفیې مدرسې لخوا چاپ سوی کتاب (دښځو دپردې شرعي حدود) مطالعه کړئ چي دشیخ محمد مجاهد زید مجده تالیف دئ. ژباړن.

سرتور سر گرځي ، یا نازک پوړنی پر سر کوي داسي ښځي دکور دباندي هم دستر پروا نه کوي ځکه څوک چي په کور کي ځان په عزت نه کړي دشرعي لباس پروا ونه کړي . دهغه څه ځخه ځان ونه ساتي چي شریعت ځني منع کړې وه دباندي هم داسي ښځي دشریعت تابعداري نه کوي . که کوم حجاب هم وکړي هغه داسي حجاب وي چي دنامحرمه نارینه سترګي نه ځني اړوي ، داسي حجاب وي چي دبدن زیات غړي یې معلومیږي ، تنګي او لنډي جامې یې اغوستي وي ان تردې چي دبدن هر غړی یې جلا . جلا معلومیږي. دداسي ښځي لپاره نو دخوږ پیغمبر ﷺ هغه وینا ده چي ده مبارک فرمایلي دي چي زما دامت څخه داسي ښځي ما په خپلو سترګو ولیدلې چي دسر په وېښتان په دوزخ کي ځړېدلې او په اور سوځل کېدلې. دغه ښځي چي بې حجابي کوي ، په کورو کي تنګي او لنډي جامې اغوندي ، نازک او لنډ پوړینان پر سر کوي ، یا سرتوري ګرځي ، یا دکورو څخه دباندي په داسي چادریو کي راوزي چي دنامحرمه نارینوو سترګي وراړوي لکه داوس زمانې تورو چادریو والا چي په جګو سنډلانو کي راوزي ـ یقیني خبره چي دغه ښځي به داخرت په ورځ په دوزخ کي دسر په وېښتانو ځړیږي او په اور کي به سوځل کیږي.

## دقبر دعذاب یوه عبرتناکه قصه

### دیوه مړي ژوندي کېدل

یوه قصه چي دقبر دعذاب اړونده ده ، که څوک ژور فکر پکښي وکړي زیات عبرت ځني اخستل کیږي زما له انده مناسبه ده چي

په دې ځای کي يې بيان کړم ، پاته دي نه وي چي دا قصه
دهندوستان دګلګت په ښار کي پېښه سوې ده ، په دې ډول چي
يوه ورځ يو کس ديوې هديرې څنګ ته تېرېدئ ، دهديرې ديوه
قبر څخه يې په لوړ اواز ږغونه واورېدل لومړی يې فکر وکړ، چي
دابه هسي خيالی ږغونه وي خو کله چي يې په ښه ځير سره غوږ
ونيوئ يقين يې سو چي دا دقبر څخه اواز راوزي او وايي چي زه
ژوندی انسان په قبر کي يم ما دروباسئ ، دغه کس دستي يوه
نژدې کلي ته ورغلی داقصه يې کليوالو ته بيان کړه دکلي څخه يو
څو کسان ورسره مله سوه هديرې ته راغله قبر ته يې غوږ ونيوئ
هغو هم دا ږغونه واورېدل ، بيا يې دعلماؤ څخه پوښتنه وکړه چي
دقبر لوځول جايز دي؟ علماؤ ورته وويل چي که ستاسو يقين وي
چي ژوندی انسان پکښې دئ نو بيا يې راکښل لازمي دي ، خلګو هم
هغه قبر سره خلاص کړ. که يې وکتل يوه ښځه ناسته ده په کفن
يې ځان پوټ کړی دئ ، ددوی څخه يې وغوښتل چي څومره ژر
کيږي ماته جامې راوړئ څو زه خپل ځان په پټ کړم ، خلګو هم
جامې ورته راوړلې ، ښځي واغوستې او په چابکۍ سره کور ته ولاړه
په يوه خونه ننوتل دروازه يې ټينګه په ځان پسي وتړل ، خلک
پسي ورغلل او ددې څخه يې وغوښتل چي دروازه را خلاصه کړه
دې ورته وويل چي دروازه خو زه درخلاصوم په دې شرط سره چي
تاسو زما دليدلو توانايي ولرئ ځکه زما دليدلو توانايي هرڅوک نه
لري ، هغه خلک چي په دې پسي ورغلي وه په هغو کي څو کسانو
ددې همت وکړ، چي خوني ته ورننوزي نو مخکي يې ږغ ور وکړ،

چي دروازه راخلاصه کړه موږ درځو .

## دستر نه کولو عذاب

ښځي وخلګو ته دروازه ورخلاصه کړه خلګ چي ورننوتل دا په یوه کونج کي ناسته ده پوړنی یې پر سر باندي اچولی دئ .دوی چي پوړنی ځني پورته کړ. چي وې لیدل پر سر باندي یې هیڅ وېښتان او پوست نسته یوازي هډوکي دي . ددې څخه یې پوښتنه وکړه چي ستا دسر وېښتان او پوست څه سوي دي ؟ ولي یوازي هډوکي معلومیږي؟ دې په جواب کي ورته وویل چي کله زه ژوندی وم په داسي ډول دکورڅخه وتلم چي دسر وېښتان به مي معلومېدل نو کله چي زه په قبر کي ښخه کړل سوم نو زما څخه ملایکو یو. یو وېښته په عذاب باندي کښې تر داسي بریده چي اوس مي نه دسر وېښته پاته دئ او نه پوست پاته دئ.

## دشونډانو سَرَه کولو عذاب

ورپسي خلګو ددغه ښځي خولې ته پام ور واړی ، خولې ته چي یې وکتل دښځي شونډان نسته یوازي غاښونه یې معلومیږي غاښونه یې هم داسي وېرونکي دي چي ورۍ نه لري یوازي دوه یا درې غاښونه دزامي په هډوکي کي معلومیږي . تاسو فکر وکړئ چي دیوه انسان شونډان پرې سوي وي او دغاښونو څخه یې ورۍ له منځه تللي وي څومره وېرونکی شکل به وي . په هر صورت خلګو ددې څخه پوښتنه وکړه چي شونډان او دغاښونو ورۍ دي ولي

نسته؟ دې په جواب کي ورته وويل : کله چې زه ژوندۍ وم نو ما به دخپلو شوندان ښکلا په غوره شکل سره کول څو دنامحرمه خلکو سترګي ماته راوړي او دهغوی نظر زه جلب کړم نو کله چې زه په قبر کي ښخه کړل سوم شوندان زما څخه پرېکړل سوه او داسي بد شکله سوم.
(الله جل جلاله دي مو په خپل فضل سره ددې حالت څخه وساتي)

## دنوکانو درنګ عذاب

وريسې خلک ددغه ښځي لاسو او پښو ته متوجه سوه ، که يې وکتل ددغه ښځي دلاسونو او پښو نوکان نسته ، خلکو پوښتنه څني وکړه چې دلاسو او پښو نوکان دي څه سوي دي ؟ دې په جواب کي ورته وويل: ما به په ژوند دښه ښکلا لپاره دلاسونو او پښو پر نوکانو باندي رنګ واهه کله چې زه په قبر کي کښېښودل سوم نو دعذاب ملايکو زما څخه ټول نوکان وکښل ، حاصل داچې ماته په قبر کي ډېر عذابونه راکړل سوه ، يعني داچې بې حجابه دکور څخه وتلم دسر وېښتان راڅخه وکښل سوه چې نه مي دسر پوست پاته سو او نه مي وېښتان پاته سوه ، شوندان راڅخه پرېکړل سوه ، نوکان راڅخه وکښل سوه ، ډول ، ډول عذابونه راکړل سوه ، کله چې ښځي دټولو هغه عذابونه بيان وکړ ، کوم چې دا ورسره مخ سوې وه لوی اواز يې وکړ ، بې هوښه سوه او بيا يې روح وخاتی ، خلکو يو وړه په هديره کي يې خاورو ته وسپارل ، الله جل جلاله په خپل عظيم قدرت سره ددې لپاره راژوندۍ کړه چې خلک يې ووينې اوعبرت څني

واخلي. کومي ښځي چي لوڅ سرونه دکور څخه وزي حجاب نه کوي دنامحرمه خلکو دسترګو څخه ځانونه نه ژغوري ددې ښځو به څه حال وي . الله ﷻ به څه معامله ورسره وکړي؟ والله اعلم
حاصل داچي کومي ښځي دبې حجابۍ په ګناه اخته وي هغه دي دپورتنۍ واقعې څخه عبرت واخلي او خپل ځان دي دالله ﷻ دعذابونو څخه وساتي . خپل اسلامي حجاب دي مراعت کړي چي ددنیا او اخرت عزت يې په برخه سي.

## تر مړيني وروسته بېرته ددنيا ژوند

دځينو خلکو په زړو کي دا شک او شبهه سته چي کله يو انسان مړ سي کله کېداى سي چي بېرته ژوندى سي؟ دغه ښځه چي پورته يې قصه بيان سوه څنګه ژوندى سوه؟ددغه سوال جواب دادئ چي الله ﷻ دومره لوى نظام جوړ کړى دئ چي دده ﷻ دقدرت ښکارندويي کوي ، الله ﷻ پر هر شي باندي قادر دئ ، دکوم شي اراده چي وکړي هرډول کار چي وي ډېر ژرېې کولاى سي نو داچي انسان پيدا کوي ، بيا يې وژني ، بېرته يې دقيامت په ورځ ژوندى کوى دغه ذات ته هيڅ ګرانه نه ده چي تر قيامت وړاندي دي دخلکو دعبرت لپاره يو انسان راوژندى کړي بلکي دا کار بيخي ورته اسانه دئ ، دا کار نه يوازي داچي په پورته قصه کي څرګنديږي بلکي داسي پيښبي نوري هم ډيري سوي دي لکه چي حافظ ابن ابي الدنيا په عربي ژبه يوه رساله ليکلې ده نوم.يې (من عاش بعدالموت) دئ دپورتنۍ قصې په څېر يې نوري پيښبي هم

رانقل کړي دي او تر مړيني وروسته دبېرته ژوند په اړه يې زيات شمېر موضوعات بيان کړي دي ، همدا ډول حافظ ابن رجب حنبلي په خپل کتاب (احوال القبور) کي هم ځيني واقعاتي په پورته ډول بيان کړي دي ، حاصل داچي کومه قصه چي پورته بيان سوه هيڅ دقران او سنت خلاف قصه نه ده بلکي دالهي قانون سره سم کېدلای سي چي يو انسان تر مړيني وروسته بېرته ژوند وکړي.

## دزياتو دنياوالو عذاب به دبې ستري له امله وي

دښځو دعذاب اړونده نورهم زيات احاديث راغلي دي لکه چي يو حديث دهغه ښځو په اړه راغلی دئ چي دنامحرمه نارينوو په وړاندي دکور څخه وزي او ستر نه کوي هغه حديث دادئ: رسول الله ﷺ فرمايلي دي : ما وليدل چي ددوزخ زياته برخه ښځي وي او ددغه ښځو ددوزخي کېدو علتونه څلور شيان وه.[1]

لومړی : په ښځو کي دالله جل جلاله اطاعت او پيروي کمه وي يعني زيات شمېر ښځي دالله جل جلاله نافرماني کوي.

دوهم : په ښځو کي درسول الله ﷺ داوامرو او لارښوونو اطاعت کم وي.

دريم : زيات شمېر ښځي دخپلو خاوندانو څخه سر غړونه کوي ، اطاعت يې نه کوي.

څلورم : زيات شمېر ښځي زيات ددې شوق لري چي دکورنو څخه

---

[1]: مسند احمد ، ج : ٢ ص : ٦٧ . ان آيتکن اکثر اهل النار.

بې ستره دباندي ووزي.
په اوس وخت کي دغه څلورم شی خورا زيات دئ يعني زيات شمېر ښځي دخپلو کورونو څخه بې ستره وزي، علاوه لا داده چي کله دکورنو څخه ووزي ښه قيمتي جامې واغوندي او ځانونه ښه ښکلي کړي ، ځانونه جوړ کړي ، عطرونه ووهي بيا دکورنو څخه ووزي کومي ښځي چي نامحرمه خلکو ته خپل زينت نه ښکاره کوي ، دکورنو څخه په داسي ډول ووزي چي خپل اسلامي ستريې پلی کړی وي يوازي خپل زينت محرماتو ته څرګند کړي هيڅ پروا نه کوي ، ښځه چي خپل مېړه ته ځان جوړ کړي ، ښې جامې واغوندي ، ځان ښايسته کړي هيڅ پروا نه کوي ، نه الله ﷻ ځني ناراضه کيږي بلکي په دې کار سره الله ﷻ ددغه ښځي څخه راضي کيږي.
الله ﷻ دهغه ښځو څخه ناراضه کيږي او عذاب باندي راځي چي دنامحرمه او پرديو نارينوو څخه ستر نه کوي ، خپل زينت نه ځني پوټوي. دنامحرمه نارينه څخه ستر کول لازمي دئ په کور کي وي او که دکور څخه دباندي وي هر چيري چي وي دنامحرم نارينه څخه اجتناب کول لازمي دئ.

## دوهمه ګناهکاره ښځه ژبوره ده چي بې ځايه ژبه چلوي

دوهمه ښځه رسول الله ﷺ په داسي حال کي وليدل چي ټول بدن يې په ژبه ځړېدئ او په دوزخ کي ځړېدل رسول الله ﷺ وفرمايل : دا هغه ښځه ده چي په خپله ژبه يې مېړه ازاراوه. ځيني ښځي داسي عادت لري چي دخپلو مړونو سره ژبي چلوي اوپه ډول ، ډول خبرو

سره دخپلو مړونو ژړونه ازاروي پاته دي نه وي چي داسي کړني نارينوو ته هم جايز نه دي چي خپلي مېرمني په نامشروع او بدو ويناوو سره وزوروي او دهغوی ژړوته ور ازار کړي. دا حديث دهغو ښځو په اړه راغلی دئ چي دمړونو سره دعوې کوي ، ژبه ورسره چلوي پر ډېره لږ خبره باندي زياتي خبري ورسره پيچي په اړه يې رسول الله ﷺ وفرمايل چي دداسي ښځو درانه بدنونه به په نازکو ژبو باندي اوېزان وي اوپه دوزخ کي به ځړېږي دابه يې عذاب وي

## ژبه چلول لويه ګناه ده

که انسان ته دلاس يا پښې او يا بل غړي په وجهه صدمه ورسيږي يعني زخمي کړل سي دغه خوږ تر ډېره وخته نه پاتيږي بلکي دلږ وخت په تېرېدو سره ښه کيږي کوم زخم چي ژبه جوړ کړي هغه تر ډېره وخته پاتيږي لکه چي يو شاعروايي:

جراحات السنان لها التيام

ولايلتام ماجرح اللسان

ژباړه: کوم زخمونه چي نېزې جوړ کړي هغه جوړيږي، هغه زخمونه چي ژبه جوړ کړي هغوی ته جوړېدل نسته.

ژبه يوه کوچنۍ ټوټه غوښه ده مګر ګناه يې بيخي زياته ده ځکه کله يې تاوان دومره زيات وي چي دټولي کورنۍ صميميت او خوشالي له منځه يوسي ، دکورنۍ زيات غړي دخوشالۍ پرځای په خوابدۍ اخته کړي ښځي بايد دې موضوع ته بيخي پاملرنه وکړي ددې لپاره چي خدای مه کړه داسي الفاظ يې تر خوله ونه وزي چي

خاوندان یې داسي ځني خوابدي سي چي دزړو زخم یې بیا نه جوړیږي. همدا ډول تارینوو ته هم لازمه ده چي دخپلو ژبو ساتنه وکړي ، دخپلي ژبي په مټ مېرمني ازار نه کړي بلکي داسلام سپېڅلی دین ټولو نارینوو او ښځو ته امر کوي چي دخپلو ژبو پوره ساتنه وکړي ، دهر ډول بېهوده او بېکاره خبرو څخه ځانونه وژغوري څو دنورو دازار لامل ونه ګرځي او ددوزخ دعذاب څخه ځانونه خلاص کړي. همدا ډول دنورو مسلمانانو ځورول ، مسخري پر کول ، تهمت پر ویل ، غیبت یې کول او داسي الفاظ ورته ویل چي دنورو مسلمانانو زړونو په ځوریږي - سخت حرام کار دئ باید په کلکه ځانونه ځني وساتل سي. په خبرو کي باید احتیاط وسي ، داسي خبري باید وسي چي دخلګو دزړونو دخوشالۍ سبب وګرځي داسي خبري باید ونه سي چي دچا زړه په ازار سي لکه چي وایي: مسلمان هغه څوک دئ چي نور یې دژبي دازار څخه په امن وي.

## دریمه ګناه کاره ښځه
## هغه ښځه وه چي ناروا اړیکي یې درلودې

رسول اللهﷺ دریمه ښځه په داسي حال کي ولیدل چي ددوزخ په اور کي په خپلو تیو باندي ځړېدل، رسول اللهﷺ یې په اړه وفرمایل : دا هغه ښځه وه چي واده یې کړی وو خو بیا یې هم دنورو خلګو سره نامشروع اړیکي درلودې، پاک لمني نارینه او ښځي دداسي اړیکو څخه په کلکه ځانونه ساتي ، نه یوازي چي دا عمل نه ترسره کوي بلکي ددې کار تصور لا هم نه کوي.

## دبې حیایی بدي پایلي

په معاصر وخت کي شرم او حیا بیخي له منځه تللې ده بله بدبختي لا داده چي دتمدن او ترقی په نوم داسي کړني ترسره کیږي چي سختته بې حیایي او بې شرمي پکښي نغښتې وي.
رسول الله ﷺ دحیا په اړه فرمایي:
الحیاء شعبة من الایمان
ژباړه : حیا دایمان یوه شعبه ده.
حیا دایمان یوه شعبه ده ، دحیا په وجه انسان دډېرو ګناهونو څخه ساتل کیږي ځکه کوم څوک چي حیا کوي په حیا کي دا شي هم سته چي څوک دنامحرم چا پر لور باندي نه ګوري کله چي څوک نامحرم چا ته ونه ګوري نو طبعي خبره ده چي دنامشروع اړیکو څخه به هم ساتل کیږي. او که څوک حیا نه لري دهر نامحرم پر لوري باندي ګوري ښکاره خبره ده چي په نامشروع اړیکو به هم اخته کیږي ځکه دنامشروع اړیکو میل لومړی ددید څخه کیږي.
کوم کس چي حیا لرونکی وي هغه دنامحرمه ښځي و طرفته نه ګوري څوک چي حیا کوي حیا انسان دناروا دید څخه او دنامحرمه ښځي سره دیوازي ناستي څخه ساتي. په حقیقت کي دورور او خور ، پلار او لور دپلار دمېرمني او پردی ښځي تر منځ پرده ده خدای مه کړه په کوم ځای کي چي پرده نه وي نو دلور او پردی ښځي تر منځ به فرق نه وي دخور او پردی ښحي ترمنځ به توپیر نه وي بلکي ټولي ښځي به په یوډول وي.

# دپلار او لور تر منځ دحیا له منځه تلل

زما یو دوست دئ چي زما سره دصمیمیت په فضا کي دوستي او محبت لري . داسلام دسپېڅلي دین داحکامو ښه پابند هم دئ . ده ته ډیري داسي ښځي راځي چي په ژوندانه کي دمشکلاتو سره مخ وي . یا پېرانانو وهلي وي . ناروغه وي او یا داسي نور مشکلات ورته پېښ وي دده څخه تعویذ او دعا غواړي. یوه میاشت مخکي ما ددغه دوست سره ملاقات درلودئ دغه دوست پټ په غوږ کي راته وویل چي اوس زیات شمېر داسي ښځي ماته دتعویذ او دعا لپاره راځي چي وایي پلرونه خپلو لوڼو ته په بد نظر ګوري یعني زموږ مړونه زموږ لوڼو ته په بد نظر ګوري . دغه ښځي وایي چي موږ دشپې پېره کوو ددې لپاره چي پلرونه پر خپلو لوڼو باندي تېری ونه کړي . شیخ وایي ما چي دا خبره دښځو څخه واورېدل ولړزېدم چي دغه ښځو ته کوم شي تجویز کړم او دڅه شي لارښوونه ورته وکړم.

تاسو لږ فکر وکړئ چي دپلار او لوڼو تر منځ دومره دحیا پرده شکېدلې وي چي پلار ولور ته په بد نظر ګوري حال داچي لور دپلار ناموس .غیرت او دځیګر ټوټه وي . داسي پلار به نو څه حق لري او ایا داسي پلار باید ژوندی پاته سي؟

## دوېډيو او تلوېزون تاوانونه

زيات خلګ نه پوهيږي چي ټولي بې حيايۍ او بې عفتۍ دتلوېزون او فيلمونو دبدو پايلوڅخه دي بلکي زيات خلګ داسي وايي چي تلوېزون کتل ، فيلم کتل نو څه تاوان لري؟ حال داچي ټوله مصيبتونه ، بلاوي چي کورونو ته راغلي دي ددغه فليمونو او بې حيا فيلمونو په وجه راغلي دي همدغه فاحش فيلمونه دي چي دپلار او لور له منځ څخه يې حيا وړې ده کله چي حيا له منځه ولاړه سي نو بې حيا ، بې عفته او بې پردې ژوند نو څه معنا لري؟ دا خو حيواني ژوند سو دانساني عزتمن ژوند څخه بې برخي سو.

رسول الله ﷺ فرمايي:

ان فاتک الحياء فافعل ماشئت.

ژباړه : که ستاڅخه شرم اوحيا ولاړه نو هغه څه کوه چي زړه دي غواړي او خوښه دي وي.

کله چي دانسان په وجود کي حيا وي د هر هغه عمل څخه ځان ژغوري چي دعفت او حيا سره منافي وي نو دغه کس لور ، خور ، مور او مېرمن سره پېژني او کله چي څوک حيا او شرم نه لري دهغه په وړاندي ټولي ښځي يو ډول دي هر څه چي په مخه ورځي هغه کوي، پر داسي انسان چي څومره وخت تيريږي په ده کي دحيوانيت صفات وده او ترقي کوي ځکه حيوانان له دې امله چي عقل او فکر نه لري په خپلو منځو کي حيا نه سره لري نو انسان چي حيا نه لري ددغه حيوانانو په څېر دئ ، الله ﷻ په خپل فضل او

مرحمت سره وانسانانو ته عقل اوفکر ورکړی دئ څو دوی ددغه فکر په مټ حیا ولري او ځانونه دحیوانانو څخه بېل کړي دحیواني ژوند پر ځای باندي باعزته انساني ژوندو کړي.

## وېډیو او تلوېزون دحیا له منځه وړلو لپاره تیغ دئ

په هر حال وېډیو او تلوېزون داسي تېز تیغ دئ چي حیا او نېک اخلاق په پرې کیږي. همدا ډول ایمان داسي له منځه وړي لکه تېزه چاړه چي دسر وېښتان له منځه وړي ، بې حیایي ایمان او نېک اخلاق په دغه ډول په چابکۍ سره له منځه وړي ، درسول الله ﷺ په رښتینې وینا کي مو واورېدل چي هغه ښځي چي نامشروع اړیکي په نامشروع طریقه سره دخلګو سره لري په دوزخ کي به په تیو سره ځړېږي او دا ډېر سخت عذاب دئ دانسان نازک بشر ددې ستر عذاب توان نه لري. موږ اوتاسو به ټول پوره کوشش کوو چي دداسي ګناهونو څخه به دلوی الله ﷻ په فضل سره ځانونه او خپلي کورنۍ ساتو. ان شاء الله

## څلورمه ګناه کاره ښځه ناولې او په لمانځه پسخند وهونکې ښځه ده

رسول الله ﷺ دڅلورمي ښځي په اړه فرمایلي دي: ما دغه ښځه په داسي حال کي ولیدل چي دواړي پښې یې پر سینه باندي تړلي وې او لاسونه یې پر سر تړلي وه په دوزخ کي غورځېدلې وه.

رسول الله ﷺ ددغه ښځي په اړه وفرمایل : دنوموړي ښځي ګناه

داوه چي په دنيا کي به يې دجنابت او حيض څخه غسل نه کاوه د
غسي ناولې به ګرځېدل، لمونځ يې په پسخند او بې پروايې سر
کاوه.

## دغسل دځنډ اندازه

کله چي پر نارينه او ښځه باندي غسل واجب سي بايد دستي غسل
وکړي که يې دستي غسل ونه کړ، استنجاء او اودس بايد تازه کړ
بيا دي بيده سي که يې دا کار هم ونه کړ، نو لږ ترلږه دي دصب
صادق پر مهال ترجماعت وړاندي غسل وکړي بيا دي لمونځ پ
جماعت ادا کړي او ښځي دي تر لمر ختو وړاندي غسل وکړي بي
دي تر لمر ختو وړاندي لمونځ ادا کړي او دا دغسل لپاره وروست
وخت دئ .که څوک غسل وځنډوي تر لمر ختو وروسته غسل
وکړي دا کارستره ګناه ده او دالله ﷻ دعذاب مستحق ګرځي ځک
څوک چي دا کار کوي جماعت ځني پاتيږي . لمونځ ځني قض
کيږي او دا ستري ګناوي دي. بايد مسلمان په جدي توګه ځا
ځني وساتي که نه نو په هغه عذاب به اخته کيږي چي رسول
الله ﷺ وفرمايه ځکه داعذاب نه يوازي چي دښځو لپاره د
دنارينوو لپاره هم دئ.

## ښځي بايد تر مياشتنۍ ناروغۍ وروسته دستي غسل وکړ

په مياشتنۍ ناروغۍ کي حکم دادئ چي کله ښځي ته مياشتن
ناروغي پېښه سي تر پېښېدو وروسته دپاکۍ نښانې پکښې ښکا

سي باید دستي غسل وکړي او دهمدغه وخت لمونځ ادا کړي ان
تردې که دومره وخت وو چي ښځي یوازي «الله اکبر» پکښې ویلای
سوای نور دغه وخت تېرېدئ پر ښځي باندي ددغه وخت لمونځ
لازم دئ که څه هم وخت تېر سي بېرته به یې راګرځوي او که
وخت زیات وي نو ښځي ته لازمي ده چي ډېر ژر غسل وکړي او
خپل لمونځ په خپل وخت کي ادا کړي که یې ځنډوي او یا سستیت
پکښې کوي تر داسي بریده چي ځني قضا سي نو دا ستره ګناه ده ،
بدبختانه په اوس وخت کي دښځو خورا زیاته بې پروایي روانه ده
کله چي یې ناجوړي پای ته ورسیږي پاکي ورته راسي دا هیڅ پروا
نه کوي کله چي یې زړه وغوښتی په هغه وخت کي غسل کوي حال
داچي دا کار لویه ګناه ده داسي لا هم سته چي دماخوستن تر لمانځه
مخکي یې ناروغي پای ته ورسیږي دا ټوله شپه غسل نه کوي حال
داچي تر صبح صادق وړاندي دا وخت لري چي دماخوستن لمونځ ادا
کړي او دماخوستن لمونځ پر دې فرض هم دئ ځکه دا په دغه
وخت کي پاکه ده یوازي غسل کول ځني غواړي ، دداسي بې پروایی
څخه باید مسلماناني ښځي په جدي توګه ځانونه وساتي ځکه داکار
لویه ګناه ده ، تاسو دصحابیانو بیبیانو ژوند ته فکر وکړئ هغوی
څومره تقوا کول کله چي به ناروغي ورته پېښه سوه نو دشپې به څو
ځلي دامبارکي ښځي راپورته کېدلې څراغ به یې لګاوه او خپل
ځانونه به یې کتل ددې لپاره چي که دوی پاکي سوي وي نو غسل
به یې کاوه څو په خپل وخت کي لمونځ ادا کړي او لمونځ ځني قضا
نه سي په اوس وخت کي خلګ دومره بې پروا سوه چي څراغ لا څه

کوڼ چي په تکلیف به لګېدئ اوس نوي ځراغان چي په یوه بټن سره لګیږي دا کار لا نه کوي او ورته ګران کار دئ دغه لږ تکلیف هم پرځان نه تېروي او لمونځ په بې پروایۍ سره قضا کوي. رسول الله ﷺ په پورتني حدیث کي وښودل چي ښځي دپاکۍ وروسته باید ډېر ژر غسل وکړي او دخپلو لمونځو پوره اهتمام وکړي داغسي ناپاکه باید پاته نه سي او دخپل غسل کولو لپاره باید پوره پایبندي وکړي او په هر قیمت دلمانځه دقضا کولو ځخه ځانونه وژغوري.

## لمانځه ته په سپکه ستر ګه کتل

رسول الله ﷺ ددغه عذاب دریم علت دلمانځه سپک بلل وشمېرل یعني داچي ځوک په لمانځه پسخند وهي مسخرې پر کوي.
لمونځ سپک ګڼل ، بې ارزښته بلل او یا یې بې اعتنایي کول ستره ګناه ده او په دې کار کي ډېر نارینه او ښځینه اخته دي ځکه په اوس وخت کي ډېر دمسلمانانو بچیان لمانځه ته هیڅ پوره توجه نه کوي همدا ډول که ددغسي خلګو سره دلمانځه په اړه خبري وسي چي دوی په عیاشۍ اخته وي ، یا جاه طلبه او یا بې حیاښځي وي نو دوی داسي جواب وایي لکه لمونځ چي ددوی په ژوند کي هیڅ ځای نه لري حال داچي دلمانځه پرېښودل په هیڅ وخت کي جایز کار نه دئ دخوشالۍ حالت وي او که دخوابدۍ حالت وي باید په پایبندۍ سره لمونځ ادا سي.
په تاسف سره باید ووایم چي اوس خورا زیات ځوانان نارینه او

ښځینه ،لویان او کوچنیان ، ځوانان او سپینږیري په ډېره بې
التفاتۍ سره لمونځونه قضاکوي او داسي سستي خورا زیاته ده.

## پنځمه ګناه کاره ښځه درواغ ویونکې او چغلګره

رسول الله ﷺ پنځمه ښځه په داسي حال کي ولیده چي سر یې
دخنزیر و او پاته بدن یې دخره و . په حقیقت انسان و. شاوخوا
ماران او لړمان پر راګرځېدلي وه . رسول الله ﷺ دنوموړي ښځي په
اړه وفرمایل دغه ښځي درواغ ویل او چغل ګري یې کول . پاته دي
نه وي چي غیبت کول او چغل ګري کول یوازي تر ښځو پوري
خاص نه دي بلکي که په نارینوو کي دا ګناوي موجودي سي هم به
په دغه عذابونو اخته وي.

## دغیبت اوچغلګرۍ ترمنځ توپیر

دلویو ګناهونو له ډلي څخه یو غیبت کول دي او بل چغلګري ده
ددې دواړو ګناوو څخه ځان ساتل لازمي دئ البته ددې دوو ګناهونو
ترمنځ یو لږ توپیر سته هغه داچي غیبت هغه ګناه ته ویل کیږي
چي یو کس دبل ورور مسلمان عیب دده په غیاب کي بیانوي ددې
لپاره چي دهغه مسلمان ورور سپکاوی وسي او هغه داسي عیب وي
چي په هغه مسلمان ورور کي خو وي مګر که په خبر سي چي یو
څوک زما دغه عیب بیانوي خوا یې بدیږي او ناراضه کیږي دمثال
په ډول که یو کس ووایي چي په فلانکی کس کي فلاني بد عیب دئ

که څه هم په هغه کس کي هغه بد عیب وي خو دخلکو په مخ ددغه کس عیب بیانول غیبت بلل کیږي ، او چغلګري دې ته ویل کیږي چي دیوه کس له خوا دځانه خبره جوړول او بیا دغه خبره بل کس ته رسول البته داسي خبره چي دهغه په رسولو کي ددغه دوو کسانوترمنځ دجګړې اوربلیږي او ددوی ترمنځ سخت مخالفت راپورته کیږي او ترمنځ یې سخته بدګماني راپورته کیږي دې کار ته چغلګري ویل کیږي ددې کار ګناه تر غیبت سخته ده ځکه په غیبت کي یوازي دیوه کس تخریب راځي او دهغه حیثیت ته تاوان رسیږي . هغه ناراضه کیږي په دې کار کي ددغه تاوان ترڅنګ ددووکسانو ترمنځ جګړه هم راپورته کیږي بالاخره په جنګ سره اخته کیږي کوم محبت چي دوی په خپلو منځوکي سره درلودئ هغه له منځه ځي .دمثال په ډول په یوه کورکي مېږه او مېرمن اوسیږي دوی دواړه زوی اومېږور لري مور را ولاړه سي دخپلي مېږور خبري خاوند ته وکړي او یا یې زوی ته وکړي بالاخره دخاوند نیت پر خپله مېږور بد کړي دزوی نیت پرخپله مېرمن بد کړي او یامېږور راولاړه سي دخسر او خوابښي خبري خپل خاوند ته وکړي بالاخره ددغه خبرو رسولو په نتیجه کي نوموړې کورنۍ دړې وړې سي ، بې اتفاقي پکښي پیدا سي بالاخره سره جلاسي دا قصې اوس خورا زیاتي دي په ډېرو کورونو کي همدا اور بل دئ خوابښي زوی ته دمېږور غیبت کوي ددې لپاره چي دزوی نیت یې پر بد سي او مېږور خپل خاوند ته دخوابښي او خسر غیبتونه کوي ددې لپاره چي نیت یې پر بد سي په پایله کي دغه کورنۍ په لوی

جنجال واوړي په هر صورت تړولي کورنۍ باید دداسي کړنو څخه ځانونه وژغوري ځکه په حدیث شریف کي چي کوم عذابونه بیان سوه دتړولو هغه خلکو لپاره دي چي په کورنیو یا دکورنیو دباندي دچغلګرۍ دندي ترسره کوي لکه مخکي چي مو یې دخوابښي او مړ.ور مثال ووایه.

## دچغلګرۍ اړونده عبرتناکه قصه

داچي چغلګري ډېره ستره ګناه ده او په دنیا کي هم ډېري بدي پایلي لري ددنیاوي تاوان دبیلګي دسپیانوي اړونده مي یوه قصه په ذهن کي راغله غواړم چي تاسو ته یې بیان کړم . یوه ورځ یو سړي خپل مریۍ بازار ته راوستی ددې لپاره چي خرڅ یې کړي نو ږغ یې وکړ ، چي زما مریۍ دئ زه یې خرڅوم ډېر ښه مریۍ دئ خو یوازي یو عیب لري هغه داچي چغلګر دئ یوسړي دده خبري واورېدې دخپل ځان سره یې فکر وکړ ، چي دا دومره عیب نه دئ راسه دا مریۍ رانیسه نو ورغلی هغه مریۍ یې څني رانیوی دځان سره یې خپل کور ته بوتی ، مریۍ دنوی مالک سره کار شروع کړ . څه وخت یې خورابښه کار او ښه خدمت وکړ ، دڅه وخت په تېرېدو سره یې بېرته هغه خپل عادت پیل کړ ، لومړی ورغلی دخپل مالک مېرمني ته یې وویل: ستا مېړه دبلي ښځي سره اړیکي لري غواړي چي ډېر ژر دهغې سره واده وکړي او تا ایله کړي زه تاته داخبري ددوستی په موخه کوم زما خبري دي ستاسره خوندي وي چاته یې بیان مه کوه ، ښځي چي دمریۍ خبري واورېدې ډېره تا ارامه او

خوابدې سوه دځه وخت په تېرېدو سره مرېي دخپل مالک ښځي
ته وويل چي زه تاته يوه نسخه درښيم دا کار وکړه انشاء الله ستا
مېړه به دبلي ښځي مينه پرېږدي ستاسره به بېرته مينه پيل کړي
. ښځي ورته وويل چي دا خو ښه خبره ده ونيسه راته وې ښيه ،
مرېي ورته وويل کله چي دي دشپې مېړه بيده سي نو يو چاقو
راواخله دږيري وېښتان يې يو څه پرېکړه او دځان سره يې وساته
بس دا کار وکړه دخاوند به دي دنورو ښځو سره مينه پري سي
يوازي به ستاسره مينه کوي ښځي ورسره خوښه کړه چي دا خو
بيخي اسانه کار دئ دا کار خو بيخي په اسانۍ سره کولای سم.
مرېي چي دخپل مالک ښځي ته داخبره وکړه دستي راغلی خپل
مالک ته يې وويل : اې باداره، ستا مېرمن دنورو نارينوو سره ناروا
اړيکي لري اوس غواړي چي هېر ژر پر تا باندي مرګوني حمله
وکړي تا ووژني او خپلي اړيکي دهغو سره نوري پياوړي کړي ،
مرېي زياته کړه چي زه ستا دخواخوږۍ په موخه داخبري کوم ،
زما خبري رښتيا دي هيڅ درواغ پکښي نسته که ته زما خبري نه
مني نو ته نن ماښام ځان پر خوب واچوه ، مه بيديږه يوازي په
ښکاره ځان بيده وښيه ، ته به ووينې چي ستا مېرمن به پر تا چاقو
راواخلي . اوبل کار دا وکړه چي زما حال پته وساته چاته مه وايه چي
داخبره ده راته ويلې ده په خپلو سترګو يې ووينه ، دمرېي مالک چي
خبري واورېدې سخت خوابدی سو کله چي ماښام سو که دی ځان
پر خوب اچوي او که يې نه اچوي خوب دوهمه نه ورځي ، خير بيا
يې هم ځان په ښکاره پر خوب واچوی سترګي يې پټي کړې ،

مېرمني يې لږ ساعت انتظارورته وکړ، کله چي يې يقين سو چي مېړه مي بيده دئ نو ولاړه سوه چاقو يې راواخيستی ، مېړه چي يې دسترګو تر کونجانو ورته وکتل دمايني يې چاقو په لاس کي دئ ژر وروغورځېدئ تر مټ يې ټينګه کړه او ورته وې ويل: ته غواړې چي ماووژنې؟ نوري خبري يې نه وکړي دستي چاقو څني واخيستی مخکي تردې چي ماينه يې يو څه ووايي په هغه چاقو يې خپله ماينه مړه کړه ، دده دمايني قريبان چي خبر سوه هغو هم راوځغستل بې پوښتني يې پرده باندي حمله وکړه دی وواژه ، لنډه داچي دواړو کورنيو يو پر بل باندي حملې پيل کړې او ترمنځ يې لويه جګړه ومونښته. دا ديوه مريي دچغلګرۍ هغه بده پايله وه چي په دنياکي يې خلګوته ورسول همداوجه ده چي چغلګري کول ستره ګناه ده هر مسلمان بايد په کلکه ځان څني وساتي.

## دکورنۍ ترمنځ چغلګري

په پورتني قصه کي تاسو وليدل چي مريي په څومره مهارت سره دوې لوی کورنۍ په سختو جګړو واړولې ، په دې وتوانېدئ چي مېړه او مېرمن يو دبل په لاس په قتل ورسوي ، چغلګر که څه هم دقتل موجب ونه ګرځي دخلګو زړونو خو سخت ځورولای سي، په هر صورت ټولو کورنيو ته پکارده چي په خپلو کورونو کي دهر ډول چغلګرۍ مخه ونيسي ، خوابښي ته په کارده چي خپل زوی ته دمېړور په اړه داسي څه ونه وايي چي دزوی نيت يې پر خپل مېرمن بد سي او نه دي خوابښي خپل خاوند ته دمېړور په اړه داسي څه وايي

چي دخسر پرخپله مېړور نيت بد کړي ،نه دي خسر دخپلي مېرمني بې بنسته خبري پر غوږ نيسي چي په پايله کي يې پر زوی او مېړور نيت بد سي . نه دي زوی دخپلي مېرمني او مور بې بنسته خبري پر غوږ نيسي چي په پايله کي دکورنۍ ترمنځ اختلاف واقع سي اوکورنۍ پر څو برخو ووېشل سي . يو پر بل يې نيتونه سره بد سي . همدا ډول دکورنۍ دباندي نورو خلکو ته هم پکار نه ده چي عام خلک يو دبله دچغلګرۍ په مټ په اختلافونه سره اخته کړي چي پايلي يې ډيري بدي دي او دنېکو اخلاقو څخه ډېر ليري کارونه دي پاته دي نه وي چي کومو کسانو ته چغلګر څه خبري وکړي بايد پلټنه پکښي وکړي او دتحقيق اوڅېړني پرته دي يې نه مني.

## درواغ ويل دعذاب لامل دي

رسول اللهﷺ دعذاب دوهم لامل درواغ ويل وفرمايه، تاسو ښاغلي پوهېږئ چي درواغ ويل څومره لويه ګناه ده ، په چغلګرۍ کي هم درواغ ملګري وي ځکه چغلګري راتلای نه سي تر هغه بريده چي درواغ نه وي نو په دې اساس په هيڅ صورت مسلمان ته جايز نه ده چي دژوند په هيڅ ډګر کي ددرواغو څخه استفاده وکړي يعني داچي په دوکانداري ، کاروبار ، ذراعت او هيڅ کار کي درواغ ونه وايي ځکه په ټولو چارو کي ددرواغو څخه استفاده حرامه ده.

# دقیامت په ورځ ددرو کسانو دعذاب لامل

رسول اللهﷺ فرمايي : دقیامت په ورځ اللهﷻ درو کسانو ته درحمت په نظر نه ګوري او نه ورسره ملاقات کوي بلکي نوموړي درې کسان به دقیامت په هولناکه شیبو کي په عذاب باندي ګرفتار وي نوموړي درې کسانو دلاندي کسانو څخه عبارت دي

۱ هغه کس چي په سفر کي اوبه ورسره وي او دغه اوبه دده تر اړتیاوو زیاتي وي او دده سره یل ملګری هم ورسره وي هغه اوبو ته اړتیا ولري او دده څخه اوبه طلب کړي ، دی اوبه ور نه کړي دغه کس اللهﷻ په عذاب اخته کوي ، البته که دده سره دومره اوبه ورسره وي چي یوازي دده اړتیاوي يې پوره کولې زیاتي اوبه نه وي ورسره په دغه وخت کي که دی دخپل ملګري څخه اوبه منع کړي یعني اوبه ورنه کړي دا کار ورته جایز دئ.

۲ دوهم هغه تاجر دئ چي دخپل مال دخرڅولو پر مهال دروغ وايي یعني داچي یو شی خرڅوي رانیونکي ته ووايي چي دا شی مي په دومره رانیولی دئ دومره پر ګټم بیا پردې خبره باندي قسم واخلي حال داچي دی په خپله خبره کي رښتین نه وي بلکي دروغ وايي دمثال په ډول تاجر ورانیونکي ته ووايي چي دغه کالي مي په زر افغانۍ رانیولي دي په دوولس سوه افغانۍ يې خرڅوم حال داچي دی دروغ وايي هغه کالي ده په زر نه وي رانیولي بلکي په اته سوه يې رانیولي وي ددې لپاره چي رانیونکی يې په دوولس سوه راڅخه رانیسي خپل خرید په دروغو زر ورته وښيي ځکه که رانیونکی

خبر سي چي ده په اته سوه افغانۍ کالي رانيولي دي هغه يې نو بيا چيري په دوولس سوه افغانۍ څني رانيسي .دغه تاجر دخپلي درواغجني خبري لپاره قسمونه هم واخلي . رسول الله ﷺ ددغه تاجر په اړه فرمايي چي دغه کس به دقيامت په ورځ په سخت عذاب اخته وي او الله ﷻ به هيڅ درحمت په نظر نه ورته ګوري
۳ دريم هغه کس دئ چي کله ديوه چاسره احسان اونېکي وکړي بيا پرهغه کس باندي احسان اچوي په منت اواحسان اچولو سره يې څوروي داسي کس به هم دقيامت په ورځ په عذاب اخته وي. الله ﷻ به درحمت په نظر نه ورته ګوري .نه به ملاقات ورسره کوي او نه به يې تزکيه کوي بلکي دده لپاره به سخت عذاب په نظر کي نيول سوي وي. ځيني کسان داسي وي چي دخلګو سره احسانونه کوي مګر احسان اچول يې عادت وي داچي دا کار دسخت عذاب لامل ګرځي بايد هر مسلمان په کلکه پرهيز څني وکړي

## ددرواغو دودول

دا کسان چي درواغ وايي او يا ددرواغو دود ايږدي دا به يقينا په سختو عذابونو کي اخته وي . تردې به نو سخت عذاب چيري وي چي سر به يې دخنزير وي او پاته بدن به يې دخره وي په دوزخ کي به غورځول سوی وي . ماران او لړمان به پر راټول وي داعذاب به دچغلګرۍ او درواغ ويلو په پايله کي ورکول کيږي. په تاسف سره بايد ووايم چي په اوس وخت کي په کورنو ، دفترونو او مجلسونو کي خورا زيات درواغ ويل کيږي او داکار دوی دځان

بیداري او زیرکي بولي ، په زرګونو ماډرن درواغ زموږ په ټولنه کي لیدل کیږي چي څوک دسیاست نوم ورکوي ، څوک دپالیسۍ نوم ورکوي او څوک نور نومونه ورکوي چي ټول ډولونه یې مولانا محمد تقي عثماني صاحب په خپل کتاب چي د(درواغ او دهغوی قسمونه) په نوم یادیږي - بیان کړي دي دخپل ځان داصلاح په موخه حتما هغه کتاب مطالعه کړئ.

شپږمه ګناه کاره ښځه

## دعذاب لامل یې احسان اچول او حسد و

رسول الله ﷺ شپږمه ښځه په داسي حال کي ولیده چي بدن یې دسپي و ، ملایکو داور په چلاخو باندي وهل ، دبدن څخه یې داور لمبې پورته کېدلې. رسول الله ﷺ ددغه ښځي په اړه وفرمایل: ددغه ښځي دعذاب لاملونه دوه وه یو داچي حسد یې درلودئ دوهم داچي داحسان کولو وروسته یې پرهغه کس باندي احسان اچوی دا دواړه لوي ګناوي دي دا کار نه یوازي چي دښځو لپاره ګناه ده بلکي دا کارونه په نارینوو کي هم رواج دي ، نارینه وي او که ښځینه وي چي یادي دوې ګناوي ترسره کړي دقیامت په ورځ به په هغه عذاب اخته وي کوم چي رسول الله ﷺ بیان کړ.

## داحسان اچولو موخه او مقصد

کله چي څوک دچا سره احسان وکړي او بیا احسان پر اچوي او دهغه خپلو ښو یادونه ورته کوي ددې مطلب دادئ چي نوموړی کس چي احسان يې کړی دئ هغه بل کس چي احسان يې ورسره کړی دئ ورته وايي چي ما احسان ددې لپاره درسره وکړی چي که زما اړتیا سوه ته به هم زما سره احسان کوي داچي زما اړتیا سوه تا زماسره احسان ونه کړ، تله دي تېره کړه په توان کي دي و یا نه و خو زما سره دي احسان ونه کړ، نو اوس زه تاته هغه خپل ښه دریادوم چي ما ستا سره کړي وه او بیا ورته ووايي چي هغه زما ښه دي وشرموه ماڅنګه ښه درسره وکړه تا ولي زما دښو بدله رانه کړه؟ دا کارپه ځانګړي ډول په ښځو کي خورا زیات وي کله چي دیوې په کورنۍ کي واده وي هغه بله یوه احسان ورسره وکړي نو بیا چي کله ددې بلي اړتیا سي هغه ښه ورسره ونه کړي نو دا خپل احسان پراچوي او په احسان اچولو سره يې ځوروي حال داچي کله یوبنده دالله ﷻ دمخلوق سره احسان کوي باید یوازي دالله ﷻ درضا لپاره احسان ورسره وکړي بدله او مزدوري يې یوازي دالله ﷻ څخه وغواړي دبندګانو څخه يې هیڅ دمزدورۍ او بدلې توقع ونه کړي که چیري مسلمان په داسي نیت سره احسان وکړي نو په مسلمان امت کي به هیڅ ناارامي او ناراحتي منځته رانه سي دا احسان په کور کي وکړي او که يې په اسلامي ټولنه کي وکړي باید مزدوري او ثواب يې یوازي دالله ﷻ څخه

وغواړي بل چاته امید ونه کړي اونه پر چا باندي احسان واچوي او نه ددې لپاره دچا سره احسان وکړي ګوندي یو وخت هغه هم په ښه راسي. مسلمان باید دبل مسلمان سره احسان وکړي که هغه کس ده ته بدله ورکړه خو ښه تر ښه که یې ورنه کړه الله جلَّ جلاله ته دي متوجه سي انشاء الله یقینا دده مزدوري الله جلَّ جلاله ورکوي او دده هڅه اوزیار بې ځایه نه بیایي.

بله خبره داده چي په اوس وخت کي دمسلمانانو ترمنځ حسد اوعناد خورازیات سوی دئ هیڅ مسلمان دبل مسلمان په وده اوترقۍ سره نه دئ خوشاله داچي یو مسلمان دبل مسلمان په ترقۍ سره نه خوشاله کیږي بلکي په خوابدي کیږي دې ته حسد وایي دا کار په ځانګړي ډول په ښځو کي خورا زیات دئ ځکه که یوه ښځه یو ډول جامې واغوندي بله ښځه یې ونه لري سخت حسد یې په کیږي او داوایي چي کاشکي دغه جامې دې نه درلودای او ما درلودای ، نه یوازي دا چي بلکي که یو بل څوک ووینې چي دمال او شتو څښتن سي ، یا ښه کور پیدا کړي ، یا یو ښه په عزت فامیل وي ، یا ښه منصب ولري او یاداسي نوري کومي ځانګړتیا وي ولري ددې حسد په کیږي دا کار ستره ګناه ده تارینه یې کوي او که یې ښځینه کوي.

## دحسد اصطلاحي تعريف

حسد دې ته وايي چې يو کس دبل چا سره کوم نعمت او ي
ځانګړتيا ويني نو په خپل زړه کي ددې تمنا وکړي چې دغ
نعمت کاشکي دده څخه اخستل سوی وای او ماته راکول سوی
وای يعني دهغه لپاره يې دنعمت زوال خوښ وي او دخپل ځان
لپاره دنومړي نعمت شتون خوښوي دې ته حسد وايي ، حسد
کبيره ګناه ده او له امله يې مسلمان دسخت عذاب مستحق ګرځي
دخبرو خلاصه داچې څلور ګناوي دمسلمانانو په منځ کي خصوص
دښځو په منځ کي خورا زياتي دي هغه څلور ګناوي دادي:
۱ : حسد ، ۲ : درواغ ويل ، ۳ : چغلګري، ۴: احسان اچول ، بايد
ټول مسلمانان ځانونه په کلکه ځني وژغوري په کوم مسلمان کي
چې دا ګناهونه پيدا سوه داخرت دسختو عذابونو سره به مخ سي او
په دنيا کي به هم دهلاکت سره مخ سي. په هر حال کومي شپږ
ګناهکاره ښځي چې بيان سوې په نورو زياتو حديثونو کي يې هم
بيان سوی دئ مسلماناني ښځي بايد ددغه شپږو ښځو دعذابونو
څخه عبرت واخلي که خدای مه کړه کومي ښځي په دغه ګناوو
اخته وي بايد په کله ځانونه ځني بيل کړي او دښکانو لاره بايد
تعقيب کړي څو دهغه سختو عذابونو څخه خلاص سي او دالله ﷻ
دفضل او مرحمت مستحقي وګرځي.
الله ﷻ دي موږ اوتاسو ټولو ته توفيق را په برخه کړي چې درسول

الله سبحانه وتعالی ددې ګران قیمته ویناوو څخه ګټه پورته کړو ، دالله جل جلاله دعذابونو څخه ځانونه وژغورو او دالله جل جلاله دسترو رحمتونو ځانونه جوګه وګرځو

وماتوفیقي الابالله وعلیه توکلت والیه انیب

❁❁❁❁



# هیله!

داچي زه پر ۱۳ ـ ۷ ـ ۱۳۸۹ هـ ش نېټه په افغانستان کي دامریکایي صلیبي یرغل ګرو ځواکونو له خوا ددوی دوحشیانه شوبلو په منځ په ډزو زخمي کړل سوم تر څو ورځو پوري ددرس کولو ، تالیف ، ترجمې او داسي نور چوپړونو دویاړ څخه بې برخي سوم نو په کور او روغتون کي تر شپاړس ورځو وروسته نور هم پاته سوم چي دا زما دتوقع بیخي خلاف خبره وه خو دڅښتن تعالي جل جلاله پرېکړه وه خلاصون ځني نه و بیا هم ماته دغه وخت تېرېدل سخت ځورونکی وه چي باید زه یو څه پکښي وکړم که څه هم تر دغه شپاړسو ورځو وروسته زه دتګ کولو جوګه نه وم او ذهني توازن مي هم برابر نه وو نو یوازي دخپل زړه دارام په موخه مي دغه کوچنۍ رساله وژباړل نو داچي دا کار مي دسختي ناروغۍ پر مهال کړی دئ نو که کومه نیمګړتیا مو پکښي ترسترګو سوه نو لومړی دالله جل جلاله ددربار څخه راته عفوه و غواړئ او بیا یې په اصلاح کي خپلي هڅي مه سپموئ.

**الله جل جلاله ته اړبنده مولوي عبدالهادي حماد**

۱۳۸۹/۷/۱۳ هـ ش

# دژباړن نور چاپ سوی آثار

| | |
|---|---|
| اړینه پوهه | تالیف |
| لوی گناهونه ددوزخ لمبې | = |
| سپېځلي ورځي | = |
| موسیقي او نوي لیکوالان | = |
| تجوید درسي کتاب | = |
| دزړه یادونه | = |
| داسلامي نړۍ مظلومیت او دخلاصون لاري چاري | = |
| رشتینی باور | = |
| دتلاوت لاربنود | = |
| دماشومانو لمونځ درسي کتاب | = |
| نبوي کورنۍ | = |
| نبوي معجزې | = |
| نبوي غزاوي | = |
| دسپېځلي پیغمبر ﷺ سپېځلی ژوند | = |
| اسلامي آداب درسي کتاب | = |
| ایازمونږ په هیواد کي دجمعې لمونځ سته؟ | = |
| ښوونه چي ورزده کړو | = |
| په اسلام کي حرام دید | ژباړه |
| خپل ځانونه وپېژنئ | = |

۲۰ـــ دنبوت او انبیاؤ تاریخ

۲۱ ددوزخ او دوخیانو حالات

۲۲ یوولس ګناه کاري ډلي

۲۳ په سرو تیارو کي سرې لمبې

۲۴ کوډي جادوګري او ناروا تعویذونه

۲۵ فضائل اعمال

۲۶ فکري جګړه

۲۷ دامام اعظم رحمة الله علیه وصیتونه

۲۸ شپږ ګناه کاري ښځي

